ورځپاڼه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا | د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز | سه شنبه د رمضان المبارک ۱۱مه ۱۴٤٦ق کال، د کب ۲۱مه ۱٤۰۳ ل کال، د مارچ ۱۱ مه ۲۰۲۵م کال، خصوصي ګڼه ۵٦۵مه، پرله پسې ګڼه ٦۵۵ مه، اتمه دوره

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | یازدهم |
| ایام | سه شنبه |
| تاریخ | ١٤٠٣/١٢/٢١ |
| افطار | ٦:٠٢ |
| عشاء | ٧:٢٢ |
| ختم سحری | ٤:٣٨ |
| آذان فجر | ٤:٤٣ |

## ننګرهار کې یو کاناډايي سیلاني د اسلام په مبارک دین مشرف شو

د ننګرهار سیمه‌ییز چارواکي وایي، چې یو ۳۷ کلن کاناډايي سیلاني ایمان راوړ او د اسلام په مبارک دین مشرف شو. د ننګرهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست کې د ګرځندوی آمر عید محمد حنفي وایي: دا ۳۷ کلن سیلاني چې پخوا یې نوم اندوارد اندریس و، د اسلام مبارک دین له قبلولو وروسته پرې محمد اکبر نوم کېښودل شو. محمد اکبر د کاناډا د Vancouver سیمې اوسېدونکی دی او د افغانستان مشهورو تاریخي او طبیعي سیمو څخه یې سیاحت کړی دی. د سرچینې په خبره، ده ویلي: د افغانانو دیني عقیدې، مېلمه پالنې او اسلامي اخلاقو یې زړه ته لاره پیدا او د اسلام دین...۳مخ



# اسلامي امارت د هیوادوالو د ستونزو حل ته ژمن دی

د ریاست الوزراء د دفتر عمومي رئیس ډاکتر ملا عبدالواسع د کابل ښار د سوداګرو او کسبګرو د ملاتړ ټولنې له رئیس او غړو سره لیدنه کړې. په دې لیدنه کې لومړی د کابل ښار د سوداګرو او کسبګرو د ملاتړ ټولنې د حقوقي ستونزو د حل رئیس او ملي سوداګرو د یادې ټولنې د فعالیتونو په اړه خبرې کړې او په بېلا بېلو برخو کې یې خپلې ستونزې او وړاندیزونه د ریاست الوزراء د دفتر عمومي رئیس سره شریک کړي دي. ډاکتر ملا عبدالواسع دوی ته د ښه راغلاست ترڅنګ ویلي: اسلامي امارت د ټولنې د ټولو اقشارو د ستونزو د حل لپاره هڅه کوي او یادې شوې ستونزې او وړاندیزونه به د حل په موخه له اړوندو ادارو سره شریک کړي.

## زابل کې ۲ فرعي روغتیايي مرکزونه پرانیستل شول

د عامې روغتیا وزارت وایي: زابل کې دوه فرعي روغتیايي مرکزونه ګټې اخیستنې ته وسپارل شول. د یادو روغتیايي مرکزونو د پرانیستو




مراسمو کې د زابل ولایت مرستیال مولوي محب الله حماس، د یاد ولایت د عامې روغتیا رئیس ډاکتر میرویس افغان او...۳مخ

## لوګر کې ۵۰ ښوونځي بیارغول کېږي

د لوګر د پوهنې ریاست مسؤلین وایي، چې د ماشومانو لپاره د ملګروملتونو د ملاتړ اداری (UNICEF) له لوري د دې ولایت په مرکز پل‌علم او ولسوالیو کې ۵۰ ښوونځي بیارغول کېږي. د دغه ولایت د پوهنې ریاست ویاند شاهپور عرب رسنیو ته ویلي: دغه ښوونځي به په راتلونکي...۳مخ



## اذربایجان او قرغزستان د افغانستان پر کانونو پانګونې ته لېوال دي

د کانونو او پټرولیم وزیر ملا هدایت الله بدري د قرغزستان د کانونو وزارت له پخواني مرستیال الماس بېک تومانوف، د اذربایجان د کانونو وزارت پخواني مرستیال ازر شکوروف او د هغوی مل پلاوي سره لیدنه کړې. په دې لیدنه کې د دواړو هېوادونو پخوانیو مرستیالانو په افغانستان کې د پانګونې زمینې غوره ګڼلې، د افغانستان د کانونو په څانګې ډول د تېلو او ګازو په برخه کې د پانګونې لپاره د یاد وزارت د همکارۍ پر



غوښتنې سربېره یې د یو معیاري لابراتوار د جوړولو ژمنه کړې ده. ملا هدایت الله بدري دوی ته د ښه راغلاست ترڅنګ ویلي: د کانونو او پټرولیم وزارت د بهرنیو پانګوالو د جلبولو او د دوی لپاره د لا زیاتو آسانتیاوو د رامنځته کولو لپاره کار کوي او د کانونو له قوانینو سره سم به په دې برخه کې هر ډول اړینه همکاري وکړي.

## د کتاب ارزونې کمېسیون غونډه وکړه

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د خپرونو چارو د معین مهاجر فراهي په مشرۍ، د کتاب ارزونې اړه ترتیب شوی راپور له ګډونوالو سره شریک کړ. وروسته د خپرونو چارو معین د کمېسیون




کمېسیون نوبتي ناسته ترسره شوه. د ناستې په پیل کې د کتاب ارزونې کمېسیون منشي، د تېرې ناستې په اړه د لاسته راوړنو او فعالیتونو په اړه خبرې وکړې او فعالیتونه یې مثبت وارزول....۳مخ

مسؤلین:
## راستنېدونکو کډوالو ته به اړینې اسانتیاوې برابرې شي

د کډوالو او بېرته راستنېدونکو چارو وزارت وایي: د کډوالو او راستنېدونکو چارو د ثبت او تثبیت کمېټې غړو ورمه ورځ د نیمروز ولایت له مرستیال ملا تورجان احمدي سره لیدنه کړې. د نیمروز ولایت د کډوالو ریاست د معلوماتو له مخې، په دې لیدنه کې د کمېټې غړو پر خپل راپور سربېره په اړوندو چارو کې خپلې ننګونې او وړاندیزونه هم د یاد ولایت له مرستیال والي سره شریک کړي دي. په دې لیدنه کې ملا تورجان احمدي د کډوالو د کرکېچ د ښه مدیریت په موخه اړینې لارښوونې کړې. ښاغلي احمدي ویلي: راستنېدونکو کډوالو ته دې په بېلابېلو برخو



کې اړینې آسانتیاوې برابرې شي، ترڅو دوی وکولی شي خپل ورځنی ژوند په ښه توګه پرمخ بوځي. نوموړي همداراز زیاته کړې: د روژې په مبارکه میاشت کې به راستنېدونکو کډوالو ته ښه خدمتونه وړاندې شي.

## له ۱۵۰۰۰ډ زیاتو وحشي الوتونکو او ژویو د قاچاق مخنیوی شوی

د چاپېریال ساتنې ملي ادارې مسئولین وایي، چې د روان لمریز کال په درشل کې د څه باندې ۱۵زره وحشي الوتونکو او ژویو د قاچاق مخه نیول شوې ده. د دغې ادارې چارواکي وایي، چې په دغو مرغانو او وحشي ژویو کې، بازان، تپوسان، ببرۍ او بېلابېل نور وحشي ژوي شامل دي او له درملنې وروسته بېرته طبیعت ته خوشې شوي دي. د چاپېریال ساتنې ملي ادارې د طبیعي میراثونو د ساتنې رئیس حامد صافي په دې هکله وایي: « هغه راپورونه چې موږ ته له ولایتونو رسېدلي، ښیي ،چې په ۱٤۰۳ لمریز کال کې نږدې ۱۵زره او ۳۱۳ مرغان او وحشي ژوي له قاچاقبرانو ضبط شوي او بېرته



طبیعت ته خوشې کړای شوي دي.» د چاپېریال ساتنې ملي ادارې د طبیعي میراثونو د ساتنې رئیس دغه‌راز وایي، چې دغې ادارې په ۳۴ ولایتونو کې د مرغانو او ژویو د ښکار د مخنیوي او د چاپېریال ساتنې کمپاین پیل کړی دی. حامد صافي په دې هکله زیاتوي: ((د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو راهیسې، په ټول هېواد کې په ۳۴ ولایتونو کې ۳۰۰۰ د پوهاوي کمپاینونه ترسره شوي، چې په مستقیم ډول ۵۰۰ زرو کسانو ته روزنه‌ورکړ شوې‌ده.))افغانستان، چې متنوع او ښکلې طبیعت لري، ګڼ بېلابېل حیوانات په‌کې موندل کېږي، خو ناقانونه ښکار، قاچاق او د مېنو ورانېدو دا ژوي له جدي خطر سره مخ کړي دي. د چاپېریال ساتنې کارپوه سید محمد سلیمانخېل رسنیو ته ویلي: ((د دې لپاره چې موږ وکولی شو...۳مخ

## له لوګر څخه د ۸ میلیاردو افغانیو په ارزښت مېوې او سبزیجات صادر شوي



د لوګر د سوداګرۍ او پانګونې خونه په روان لمریز کال کې له دې ولایت څخه د اتو میلیاردو افغانیو په ارزښت بهرنیو هېوادونو ته د تازه مېوو او سبزیجاتو له صادرولو خبر ورکوي. د مسئولینو په خبره د اوبو مهارول او کرونډګرو ته د امارتي...۳مخ

## کتاب لوستل؛ د پوهې او پرمختګ دروازه!




۲مخ

## د اسلامي تمدن ځورونکی زوال او د بیارغونې هیلې



صفحه ۲

## د میدان وردګو د برښنا شبکې پراختیايي چارې ارزول کېږي



د افغانستان برښنا شرکت عمومي اجرائیوي رئیس ډاکتر عبدالباري عمر د میدان وردګو له والي قاري بختیار معاذ سره د برښنا شبکې د پراختیا او د ګډو همکاریو د زیاتیدو په اړه خبرې کړې دي. ډاکتر عبدالباري عمر د میدان وردګو والي ...۳مخ




# کتاب لوستل؛ د پوهې او پرمختګ دروازه!

پوهه هغه رڼا ده، چې انسان ته د حقیقتونو د درک، د ژوند د غوره کولو او د پرمختګ لاره ښيي. د دې رڼا د تر لاسه کولو لپاره کتابونه، ورځپاڼې او مجلې اساسي وسیلې دي. د تاریخ په اوږدو کې ټول هغه ملتونه، چې د لوستلو او مطالعې عادت یې خپل کړی، د تمدن، پرمختګ او نوښت سمبولونه ګرځېدلي دي. برعکس، هغه ټولنې، چې له مطالعې سره یې لاره بېله کړې، له وروسته پاتېوالي او ناپوهۍ سره مخ شوې دي.

کتاب د علم او معرفت هغه لویه خزانه ده، چې د انساني فکر، تجربو او تحقیق نتیجه پکې خوندي ده. د کتاب لوستل نه یوازې د معلوماتو د زیاتوالي سبب ګرځي، بلکې د انسان فکري وړتیاوې، د استدلال ځواک، د تحلیل مهارت او د تخلیقي تفکر وړتیا هم پیاوړې کوي. سربېره پر دې، کتاب د اخلاقو، زغم، حوصلې او فکري پراخوالي سرچینه ده، چې یو فرد د علمي او اخلاقي کمال لوړو پوړیو ته رسوي.

ورځپاڼې د عامه پوهاوي، سیاسي شعور، اقتصادي معلوماتو او ټولنیزو چارو د درک لپاره اړینې دي. هغه ټولنې، چې ورځپاڼې لولي، له نړیوالو، ملي او سیمه‌ییزو تحولاتو څخه خبرې وي او کولی شي پر وخت مناسب تصمیمونه ونیسي. ورځپاڼې نه یوازې دا چې د سیاسي شعور د لوړولو وسیلې دي، بلکې د عامه ذهنیت جوړونې، د فکر روزنې او د عامه افکارو روښانولو کې هم مهم رول لري.

مجلې د علمي، فرهنګي، اقتصادي، صحي او نورو مهمو برخو ځانګړې مطبوعاتي وسیلې دي. د مجلو لوستل د دې سبب کېږي، چې خلک د ځانګړو موضوعاتو په اړه ژور معلومات تر لاسه کړي. که یو څوک غواړي د ټکنالوژۍ، اقتصاد، روغتیا، تاریخ یا ادب په اړه پراخ معلومات ترلاسه کړي، مجلې ورته له ټولو ښه سرچینه ده.

د کتاب، ورځپاڼې او مجلې لوستل د ټولنې د اصلاح، د خلکو د فکري بیدارۍ او د علمي پرمختګ سبب کېږي. مطالعه د اخلاقو، زغم، صبر او د منفي احساساتو د کنټرول په برخه کې مرسته کوي.

کتابونه، ورځپاڼې او مجلې د علم او شعور دروازې دي، چې د یوه ملت د پرمختګ اساسي وسیلې ګڼل کېږي. که موږ غواړو، چې زموږ ټولنه له فکري، اقتصادي، علمي او اخلاقي لحاظه پرمختللې وي، باید د لوستلو او مطالعې فرهنګ ته وده ورکړو. مدرسې، ښوونځي، پوهنتونونه، کورنۍ، دیني مراکز او عامه اداري باید دې برخې ته ډېره پاملرنه وکړي، ځکه چې یوازې د علم له لارې موږ کولی شو، روښانه راتلونکې ولرو.

# د اسلامي تمدن ځوروونکی زوال او د بیارغونې هیلې

محمد قاسم عزام

اسلامي تمدن، چې د علم، تمدن او معنوي ارزښتونو یو نه ماتېدونکی اساس و، د تاریخي جریاناتو له امله د زوال له پړاوونو سره مخ شو، خو تل یې د بیا راژوندي کېدو هڅې دوام درلودې. دا تمدن چې د عدالت، علم او روحاني ځواک له مخې ځانګړی و، د بېلابېلو عواملو له امله کمزوری شو. د اندلس سقوط، د عثماني خلافت زوال، د مغولو او د استعماري ځواکونو یرغلونه هغه مهم لاملونه وو، چې اسلامي نړۍ یې د یوه اوږده زوال پر لور بوتله.

د اندلس تمدن، چې د اسلامي تاریخ یوه زرینه دوره ګڼل کېده، د خپل علمي، فرهنګي او تمدني عظمت له اوجه وروسته د زوال پر لور ولاړه. دا تمدن، چې د اروپايي تیارو پر وړاندې د علم، هنر، او فلسفي یو ځلاند مشعل و، د بېلابېلو داخلي او خارجي عواملو له امله د کمزورۍ او ورکېدو لور ته لاړ. د داخلي اختلافاتو ژورېدو، د اخلاص نشتوالي او د بهرني دښمن پر وړاندې د بې نظمۍ حالت د دې لامل شو چې مسلمانان خپلې له ټولو لویې تمدني لاس ته راوړنې له لاسه ورکړي. د واک پر سر شخړو، د سیاسي بې ثباتۍ، او د رهبرۍ د کمزورتیا له امله، اسلامي سلطنتونه په وړو وړو دولتونو (ملوک الطوایفیو) وویشل شول، چې دا حالت د مسلمانانو ترمنځ د یووالي پر ځای د خپلمنځي رقابتونو، سازشونو او د پردیو قوتونو د نفوذ سبب شو. د دیني بصیرت کمزوري کېدل، د علمي پرمختګ پر ځای اشرافي ژوند ته ترجیح ورکول او د سیاسي تدبیر پر ځای د احساساتي پرېکړو کول، دا ټول هغه عوامل وو چې اندلس یې د زوال کندې ته ورټېل واهه. د دیني شعور کمښت او علمي بنسټونو ته نه پاملرنه د دې لامل شوه چې د مسلمانانو فکري ځواک کم شي، له نوښتونو پاتې شي او د راتلونکو خطرونو پر وړاندې بې پروا و اوسي. د تعصب خپرېدو او د فکري زوال راتګ مسلمانان له علمي تفکر، نوښت او اجتهادي روحیې څخه لرې کړل، چې دا هر څه د تمدن د دوام لپاره اړین وو. بله خوا،

د بهرنیو قوتونو، په ځانګړي ډول د مسیحیانو، له لوري د مسلمانانو پر وړاندې د اوږدمهالو استعماري پلانونو تطبیق، د هغوی د ورو ورو کمزورۍ کېدو لامل شو. کله چې داخلي نظامونه د خپلمنځي شخړو له امله بې ثباته شول، مسیحي ځواکونو، چې تل د اندلس د بېرته نیولو په هڅه کې وو، فرصت وموند، چې پر مسلمانانو یې یو په بل پسې حملې وکړې او بالاخره د غرناطې په سقوط سره یې د اندلس اسلامي واکمني پای ته ورسوله. د سیاسي رهبرۍ د کمزورتیا تر څنګ، اقتصادي رکود، د تجارتي لارو محدودیت او د زراعتي سکتور ضعیفېدلو د مسلمانانو اقتصادي بنسټونه هم ځپلي وو، چې دا هر څه د تمدن د ورکېدو په لور یو بل ګام و. کله چې مسلمانان د خپل تمدن د ژغورلو پر ځای له یو بل سره پر شخړو او د قدرت پر سیالیو بوخت شول، دښمنانو له دې فرصت څخه استفاده وکړه، تر دې چې بالاخره د اندلس شتمن تمدن، چې د زرګونو علماوو، شاعرانو، فلاسفه وو او ساینسپوهانو زیار ته یې تکیه کوله، د تاریخ یوه بنده پاڼه وګرځېد.

د عثماني خلافت زوال د اسلامي امت لپاره نه یوازې یو ستر ټکان و، بلکې د اسلامي یووالي، عدل او ځواک د یوې اوږدې دورې پای ته رسېدل و. دا نظام، چې د

قرنونو لپاره یې د اسلامي نړۍ د سیاسي، اقتصادي او نظامي قدرت استازیتوب کاوه، د وخت په تېرېدو له بېلابېلو داخلي او خارجي ستونزو سره مخ شو، چې بالاخره یې د زوال سبب شو. داخلي کمزورتیاوې، د اداري فساد پراخوالی او د اروپايي استعماري ځواکونو نه سترې کېدونکې سیاسي توطیې هغه عمده عوامل وو، چې عثماني خلافت یې ورو ورو کمزوری کړ. د رهبرۍ ضعف، چې د عثماني خلافت وروستیو کلونو کې له ټولو ستره ستونزه وه، د دې لامل شو چې حکومت مرکزي کنټرول له لاسه ورکړي، سیمه‌ییز چارواکي پر خپلو سیمو واکمن شي او داخلي فتنې زور واخلي. د عصري پرمختګ اړتیاوو ته نه پاملرنې، د پوځي او اداري اصلاحاتو ځنډولو او د علمي ودې مخنیوي د خلافت بنسټونه کمزوري کړل، تر دې چې اروپايي استعماري قوتونو له دې کمزورتیاوو څخه ګټه واخیسته او د خلافت پر ضد یې سیاسي، نظامي او اقتصادي فشارونه زیات کړل. د عثماني دولت د اقتصادي کمزورتیا یو عمده لامل د نړیوال تجارت د لارو بدلول، د صنعتي انقلاب له رامنځته کېدو سره د اروپا اقتصادي پرمختګ او د عثماني دولت د مالیاتي نظام زوړوالی و. دا هر څه د دې لامل شول چې دولت ونه توانېږي خپل لګښتونه

پوره کړي، پوځ ته لازم تجهیزات برابر کړي او د نویو اقتصادي چیلنجونو پر وړاندې مقاومت وکړي. د نړۍ سیاسي تغیراتو ته نه پام، د اروپايي دولتونو د پرمختللې ډیپلوماسۍ درک نه لرل او د نړیوال سیاست له پېچلتیاوو سره نه همغږي کېدل د عثماني خلافت د شاتګ یو بل مهم لامل و. د عثماني حکومتونو داخلي بې ثباتي، د ملي شعور کمښت او د نړیوال سیاست له جریان سره د اسلامي نړۍ د رهبرۍ نه بلدیت، هغه عوامل وو چې دا ستر ځواک یې ورو ورو د زوال کندې ته ورټېل واهه. اروپايي قوتونو، چې تل د عثماني خلافت د کمزورتیا په هڅه کې وو، د مختلفو سیاسي، اقتصادي او نظامي توطئو له لارې دا خلافت له دننه وځاپه، تر دې چې د لومړۍ نړیوالې جګړې په پای ته رسېدو سره عثماني خلافت د تل لپاره ړنګ شو، او اسلامي نړۍ د استعماري واکمنیو تر سیوري لاندې راغله.

د مغولو یرغلونه د اسلامي نړۍ لپاره یوه ستره ازموینه وه، چې نه یوازې یې د اسلامي تمدن فزیکي جوړښت ته زیان ورساوه، بلکې د فکري، کلتوري او سیاسي تسلسل د درولو سبب هم شول. د چنګېز خان له قیام څخه نیولې د هلاکو خان تر حملو پورې، د مغولو وحشیانه یرغلونو د اسلامي نړۍ بنسټیز مرکزونه سخت وځپل. په ۱۲۵۸م کال د بغداد سقوط،

چې د عباسي خلافت د پای ته رسېدو نښه وه، د اسلامي تمدن پر علمي، فکري او سیاسي محورونو نه جبرانېدونکې اغېزه وکړه. د مغولو پوځیانو د بغداد ښار ټول علمي مراکز، جوماتونه او کتابتونونه له خاورو سره خاورې کړل، تر دې چې د "دارالحکمة" کتابتون، چې د اسلامي نړۍ د علومو یو ستر مرکز و، د دجلې سیند ته واچول شو او ویل کېږي چې د اوبو رنګ د کتابونو د رنګ له امله بدل شو. دا یوازې بغداد نه و، بلکې د خراسان، سمرقند، بخارا او نیشاپور په څېر لوی اسلامي ښارونه هم د مغولو د ظلم ښکار شول. د دیني او مدني ټولنو نظام خراب شو، فقهاء، علماء او د علم مشران یا ووژل شول یا له خپلو وطنونو وتښتېدل، چې د علمي غورځنګونو د تسلسل د ځنډ سبب شو. د مغولو یرغلونو د وېرې داسې فضا رامنځته کړه چې د اسلامي نړۍ د سیاسي یووالي بنیادونه یې ولړزول، حکومتونه یې کمزوري کړل او د اقتصادي نظام لمن یې هم پراخه زیانمنه کړه. تجارتي لارې وځپل شوې، کرنیز نظام له منځه ولاړ او ښارونه خالي شول، چې له امله یې اسلامي نړۍ ته اقتصادي بحران ورپېښ شو. سره له دې، د وخت په تېرېدو، مغول پخپله د اسلامي تمدن له فکري او کلتوري ځواک سره مخ شول، اسلام ته داخل شول او د وخت په تېرېدو د اسلامي تمدن د بیا رغونې برخه وګرځېدل. مګر د هغوی یرغلونو چې کومه دایمي ضربه ورکړه، د اسلامي نړۍ د سیاسي، علمي او اقتصادي نظام د کمزورتیا یو مهم عامل و، چې د قرنونو لپاره یې اغېزو دوام وکړ.

د استعماري دورې راتګ د اسلامي نړۍ پر سیاسي، اقتصادي او کلتوري جوړښت ژوره اغېزه درلوده، چې پایله یې د اسلامي تمدن کمزوري کېدل او د غربي قوتونو له خوا د اسلامي هېوادونو استثمار و. اروپايي طاقتونو، لکه انګلیس، فرانسې، هالنډ، پرتګال، او وروسته ایټالیا، د افریقا، آسیا او د منځني ختیځ اسلامي هېوادونه په تدریجي ډول تر استعمار لاندې راوستل، چې... ۳مخ



# جایگاه زن در اسلام

ربانی

بعد از ظهور دین مبین اسلام و نزول وحی از جانب پروردگار به حضرت محمد ص، پیروان این دین آسمانی با تمام وجود از حقوق و عفت دختران و زنان دفاع نموده اند. خداوند متعال در قرآن عظیم الشأن و اشرف مخلوقات حضرت محمد (ص) در احادیث مبارک بار ها در مورد جایگاه دختران و زنان تحت عناوین مختلف همچون مادر ،دختر،خواهر و همسر تاکید ورزیده اند.

دین مبین اسلام از هیچ لحاظ بر زنان و دختران مسلمان چیزی را که به زیانشان باشد تحمیل نکرده است.

به همین دلیل است که امروز کارشناسان حوزه دین شناسی به این عقیده اند که دین اسلام یکی از فمنیست ترین دین در تاریخ ادیان جهان است.

این در حالیست که دین مبین اسلام ۱۴۴۶ سال قبل از امروز تمام حقوق زنان را بدون هیچ کمبودی و تبعیضی میان مرد و زن به او بخشیده و حکومت های اسلامی و مردان مسلمان را محافظ و مدافع آن قرار داده است.

این حقوق زمانی به زنان و دختران مسلمان بخشیده شده است که در آن زمان اعراب جاهل و سایر اقوام و امپراتوری هایی که خود را روشنفکر و متمدن می نامیدند، وجود زن را در خانواده لکه ننگ دانسته و بعد از تولد بلافاصله از ترس اینکه مردم از به دنیا آمدن دختری در خانواده ایشان با خبر نشوند، طفل معصوم را به جرم دختر بودن بلافاصله زنده به گور می نمودند و آنهایی که به لطف پروردگار زنده می ماندند، در آینده به عنوان بخشی از اموال تجارتی خرید و فروش می شدند و بودند اقوامی در این میان که زنان را بعد از مرگ شوهر به عنوان بخشی از میراث میان اقارب شوهرش تقسیم می نمودند و یا با شوهرش زنده به گور می نمودند.

این در حالیست که بیشتر این قوام در دنیای عصری/مدرن آن هم بعد از نیمهٔ دوم قرن نزدهم زمانی که بیش از ۱۵۰۰۰ زن کارگر و مظلوم که از نابرابری جنسیتی و عدم دسترسی به حقوق شان مانند حق رای، امکانات و دست مزد پایین و ساعات کاری بیشتر نسبت به مردان شکایت داشتند در نیویارک آمریکا علیه حکومت مردسالار تظاهرات نمودند تا آنکه مورد توجه قرار گرفته و یک روز (هشتم مارچ) را آن هم بعد از قرن ها ظلم و سرکوب زنان و نیز مبارزه فمنیست ها علیه این بی عدالتی از اروپا گرفته تا آمریکا به عنوان روز جهانی زن اعلام نمودند. روز جهانی زن برای اولین بار در کشور های که امروز خود را مدافع درجه اول حقوق زن معرفی می نمایند مانند : آلمان، اتریش و دنمارک تجلیل شد و بلافاصله به امریکا و سایر نقاط اروپا رسید. این خود نشان دهنده آن است که رهبران و مردان این کشور ها از همان اول برای زنان و دختران احترامی قایل نبوده اند که سرانجام زنان مجبور شدند تا برای دفاع از حقوق شان به جاده ها برآمده و صدا بلندنمایند.

این بدان معناست که بی عدالتی، ظلم ، نابرابری جنسیتی و محروم ساختن زنان از حقوق اساسی شان ریشه در همان کشور ها (اروپا و امریکا دارد وگرنه چرا این صدا از کشور های اسلامی مانند افغانستان بلند نشد. شاید آنها ندانند و یا چشم بر حقایق بسته و کور کورانه کشور های اسلامی مانند امارت اسلامی افغانستان را متهم به نقض حقوق زنان و نابرابری جنسیتی کنند؛ اما الحمدلله تمام زنان مسلمان در سراسر دنیا به ویژه زنان مسلمان و مجاهد پرور افغانستان این حقیقت را دانسته و با رضایت کامل در کنارخانواده و زیر بیرق امارت اسلامی با خواست و اراده قلبی خود با عزت و عفت زنده گی می کنند و تنها زنانی از این روز تجلیل می نمایند که مورد ظلم قرار گرفته و با نابرابری مواجه اند و این شامل زنانی می شود که در خاستگاه تبعیض و نابرابری (امریکا و اروپا) زنده گی می کنند و یا جاسوسان و حلقه به گوشان این کشور ها در کشور های اسلامی اند.

تجلیل کننده گان روز هشتم مارچ ادعا دارند که یکی از عوامل عمده تجلیل از روز جهانی زن مبارزه علیه نابرابری جنسیتی و دفاع از حقوق زنان است که این خود نشان دهنده آن است که زنان و دختران هنوز هم در آن کشور ها تحت ظلم، نابرای جنسیتی و عدم دسترسی به حقوق شان قرارگرفته و امنیت روحی و جسمی ندارند و حقوق انسانی شان به بدترین حالت ممکن و به گونه سیستماتیک نقض می شود. مثلا: آنها ضمن تحمیل ده ها شغل طاقت فرسا بر زنان حتی عمل زشت تن فروشی را به عنوان شغل بالای زنان قبولانده اند. در حالی که اگر زنان آزادی انتخاب، امکانات کافی و حمایت مردان را داشته باشند به هیچ وجه حاضر به انجام این شغل ننگین نیستند، این هم درحالیست که حکومت های اسلامی و مردان غیور مسلمان به ویژه امارت اسلامی افغانستان و مردان غیور افغانستان با تمام توان تا زمانی که رمقی در بدن دارند اجازه همچنین بی عزتی و بی عفتی را برای زنان که همانا مادران، خواهران و دختران هستند نمی دهند، خود زحمت می کشند تا نیاز های مشروع زنان را به بهترین وجه ممکن بر آورده ساخته تا زنان در آرامش کامل و خاطر آرام به زنده گی ابرومندانه خویش ادامه دهند و سرانجام تمام زنان مسلمان افغانستان دانسته اند و پاسداری می نمایند از اینکه امارت اسلامی افغانستان و مردان غیور این سرزمین ضمن تلاش بیشتر برای تأمین نیازهای زنان عفیف این سرزمین از حقوق آنها دفاع و حراست می نمایند؛ مگر جاسوسانی(زنانی) که حقوق و آزادی را در برهنگی و زیر پا گذاشتن شعایر دین مقدس اسلام می دانند.

## د کابل ښار په (۱۰)مه ناحیه شهر نو کې پر یو امارتي ملکیت د پانګونې خبرتیا!

د مالیې وزارت د دولتي املاکو لوی ریاست غواړي چې د کابل ښار په لسمه (۱۰) ناحیه کې یو (۱) امارتي جایداد د شهر نو سوداګریزه او استوګنیزه ودانۍ په نوم چې مساحت یې (۲٦۷٦) دوه زره شپږسوه شپږ اویا متره مربع دی د پانګونې په موخه د ازادې داوطلبي له لارې اعلان ته وسپاري، اوس مهال د یاد جایداد دوه (۲) پوړه ځمکتل کیندنه شوې ده او څلورو اړخونو ته یې سیخ لرونکی کانګریټي دیوال جوړ دی، د یاد جایداد د جي، پي ایس کوردیناتو (طول البلد ـ ٦۹.۱۷۰٦۹۰) او (عرض البلد ـ ۳٤.۵۳۵۰۵۲) دي، چې له (۲) ځمکتلونو سره په (۲۰) شل پوړونو کې جوړیږي.

ټول هغه حقیقي او حکمي اشخاص چې غواړي په یاد امارتي جایداد پانګونه وکړي کولای شي چې خپل غوښتنلیکونه د اعلان له خپریدو څخه وروسته د څلوېښت (٤۰) ورځو په موده کې د مالیې وزارت د دولتي املاکو لوی ریاست ته وسپاري او شرطپاڼه د (۵۰۰۰) پنځه زره افغانیو په بدل کې تر لاسه کړي، آفرخلاصونه د مالیې وزارت خیبر د غونډو په تالار کې د اعلان د ختمیدو تر نیټې یوه ورځ وروسته په ۱٤۰٤/۲/۲ هـ ش نیټه ترسره کیږي.

ستاسو له همیشني همکارۍ څخه مننوی یو.

د اعلان د خپریدو نیټه: ۱٤۰۳/۱۲/۲۱ هـ ش

د اعلان د ختمیدو نیټه: ۱٤۰٤/۲/۱ هـ ش

د اړیکي شمیره: ۰۹۳۷۹٦۵۷٤۸٦+

د واټسپ شمیره: ۰۹۳۷۹٦۵۷٤۸٦+

د شرطپاڼي د ترلاسه کیدو پته: د دولتي املاکو لوی ریاست سینماپامیر ۱٤ پوړیزه ودانۍ، څلورم پوړ، د پلان او پانګونې آمریت.

### اطلاعیه تغیر مکان رهنمای معاملات

دفتر رهنمای معاملات پوپلزی به اسم محترم رفیع الله فرزند طلا محمد ولدیت محمد طاهر واقع قلعه احمد خان ناحیه ۱٦ موقعیت دارد و میخواهد به ساحه سرک اول کارته نو ناحیه ۸ شاروالی کابل نقل مکان نماید . بناء مراتب به آگاهی شما رسانیده شد.۹۷۳۱

# افغان اعلانات

### د داوطلبیو اعلان

د کابل ولایت د کانونو ریاست په پام کې لري چې د قرارداد د عقد په موخه ساختماني کاني موادو تقاضي ساحې د دوه کالو اجارې په قرارداد ورکړي

| شمېره | ولایت | ولسوالي | د ساحې نوم | د موادو ډول | مساحت ساحې |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | کابل | بګرامي | پهلوي ګڼلات ښاروالي | سنګ تعمیراتي | ۳٦۹۰.۳ |

ټول داوطلبان کولای شي چې د ګډون په موخه خپله درخواستي له ۱۹/ ۱۲/ ۱٤۰۳ نېټې تر ۲۹/ ۱۲/ ۱٤۰۳ پورې د کابل ولایت د کانونو ریاست ته وسپاري او د داوطلبي اړوند فورمې له یاد ریاست څخه ترلاسه کړي.

او د حسن اجرا ضمانت یې [illegible] پنځلس زره (۱۵۰۰۰) افغانۍ او د ژوند چاپېریال ساتنې ضمانت یې څلوېښت زره (٤۰۰۰۰) افغانۍ دي. ۹۷۳۰

### اطلاعیه مفقودی

یک قطعه تقسیم خط شرعی نمبر ۱۰۲۲/۲ مورخ ۱۳٦۷/۷/۱۱ مرتبه محکمه ناحیه هشتم کابل به اسم اختر محمد فرزند نور احمد ولدیت شیر احمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۳۲

### اطلاعیه مزایده جایداد

بالاثر تجویز مورخ ۱٤٤٦/۵/۱۱ صادره ریاست محترم محکمه ابتدائیه زون سوم قرار است جایداد محمد حسین فرزند رحمت الله ولدیت قدرت الله مندرج قباله شرعی نمبر ۲۱٦۵ بر ۲۹۳ مورخ ۱۳۹۹/۸/۱۱ واقع سرک دوم پروژه تایمنی مربوط ناحیه چهارم شهر کابل جهت تحصیل دین دائن از طریق داوطلبی و مزایده از طرف هیئت مختلط بفروش میر سد.

کسانیکه تقاضا خرید آنرا داشته باشند بعد از نشر اعلان در معیاد عرایض خویش را به ریاست حقوق ولایت کابل واقع فروشگاه تعمیرسابقه وزارت محترم عدلیه بسپارند و شرطنامه را ملاحظه و تضمین نقدا اخذ میگردد.۹۷۱۸

### اطلاعیه مفقودی

یک جلد کتابچه صفایی خانه واقع ناحیه ششم کابل به اسم حمید الله فرزند علی بابا مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۷۱۵

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم ضیا الله فرزند محمد غنی یک عراده موتر پلیت ۳۲۳٦۵ بس کابل نوع تیوتا بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای عبدالصبور فرزند عبد الصمد بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۱۱

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت خالد الیاس لمتید یک عراده موتر پلیت ۵٤٦٦٦- ش کابل نوع تیوتا کرولا خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای خلیل فرزند عیسی خان بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۱۲

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت افغان انترنشنل اریوب لمتید یک عراده موتر پلیت ۲۹٦٤۳- ل کابل نوع بنز مرسیدس خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای حاجی سیف الرحمن فرزند حاجی شاه الرحمن بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۷۲۰

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم فضل الله فرزند پاد شاه یک عراده موتر پلیت ۷۸۱۸٦- ل کابل نوع بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای حاجی سیف الرحمن فرزند حاجی شاه الرحمن بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.۹۷۲۱

### اطلاعیه فروش موتر

اسامی محترم شرکت صفت نور لمتید یک عراده موتر پلیت ۵۳۸٤۱-۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا غرفه دار جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای گل احمد فرزند الله گل بفروش رسانیده است.بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند.

۹۷۲۷

---

### د اسلامي تمدن...

دا یرغل یوازې فزیکي تسلط نه و، بلکې له فکري، اقتصادي او ټولنیز اړخه یې اسلامي نړۍ ته لوی تاوانونه ورسول. د استعماري ځواکونو لومړۍ هڅه دا وه چې د اسلامي هېوادونو طبیعي شتمنۍ ولوټي، د سرو زرو، تېلو او تجارتي سرچینو کنټرول ترلاسه کړي او د خپلو صنعتي انقلابونو لپاره ارزانه خام مواد او مزدوران پیدا کړي. د اقتصادي تسلط تر څنګ، فکري استعمار هم د دوی د تګلارې یوه مهمه برخه وه، چې د تعلیم، رسنیو او ټولنیزو تحولاتو له لارې یې اسلامي فکر کمزوری کړ، د خلکو ارزښتونه یې بدل کړل او داسې نظریات یې خپاره کړل چې د اسلامي هویت پر ځای یې غربي افکارو ته زمینه برابره کړه. استعماري قوتونو د اسلامي نړۍ د یووالي د مخنیوي لپاره مصنوعي اختلافات راپیدا کړل، قومي او مذهبي تفرقه یې پراخه کړه او داسې جغرافیوي سرحدونه یې رسم کړل چې د اسلامي امت د طبیعي پیوستون خلاف وو. د سیاسي واک پر ځای کولو کې، استعماري ځواکونو محلي حاکمان د خپلو لاسپوڅو په توګه وټاکل، چې د اسلامي قانون پر ځای یې غربي نظامونه حاکم کړل، اسلامي ارزښتونه یې تر پوښتنې لاندې راوستل او د خلکو د اقتصادي خپلواکۍ پر ځای یې د استعماري سوداګرۍ نظام ته وده ورکړه، چې اسلامي هېوادونه یې د اقتصادي ودې له حقیقي فرصتونو څخه محروم کړل. دا هر څه د دې لامل شول چې د اسلامي نړۍ تمدني تسلسل وځنډېږي، سیاسي بې ثباتي زیاته شي او اقتصادي کمزوري دوام وکړي، چې نن ورځ هم د ډېرو اسلامي هېوادونو د پرمختګ پر وړاندې یو ستر خنډ ګڼل کېږي.

که څه هم اسلامي تمدن د زوال مختلف پړاوونه تېر کړل، خو بیا هم د راژوندي کېدو امکانات یې موجود دي. د علمي، اقتصادي او سیاسي اصلاحاتو له لارې، د داخلي یووالي د ټینګښت، د اسلامي ارزښتونو د پیاوړتیا او د عصري پرمختګونو په درک کولو سره، دا تمدن بېرته خپل پخوانی عظمت ترلاسه کولی شي. د تعلیمي نظام پیاوړی کول، د سیاسي بصیرت لوړول، د اسلامي اصولو پر بنسټ د اقتصادي عدالت پلی کول او د فکري خودکفایتۍ رامنځته کول هغه لارې دي چې کولی شي اسلامي تمدن بېرته خپل زاړه مقام ته ورسوي. د زوال عوامل که هر څومره ژور وي، د بیا رغونې لپاره اراده او تدبیر هغه عوامل دي چې هر ډول سقوط بېرته د ترقۍ پر لور اړولی شي.

### ننګرهار کې...

د منلو پرېکړه یې کړې ده. د ننګرهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د ګرځندوی آمر ویلي: دوی د سیلانیانو راتګ ته ښه راغلاست وایي، چې له دې لارې د افغانستان د خلکو واقعي انځور نړۍ ته ښکاره شي. دا په داسې حال کې ده چې په دې وروستیو کې څو نورو بهرنیو سیلانیانو هم افغانستان ته د سفر پر مهال بېلابېلو ولایاتو کې د اسلام مبارک دین قبول کړی دی. اسلام یو سپېڅلی دین دی او د نړۍ په ادیانو کې له ټولو ډېر پیروان لري.

### زابل کې ۲ فرعي...

یو شمېر نورو مسئولینو ګډون کړی و. زابل کې د عامې روغتیا ریاست وایي: دغه روغتیایي مرکزونه د مرکز قلات اړوند باباګک او میزاني ولسوالۍ په درویشک سیمو کې پرانیستل شول. د یاد ریاست په وینا، د دې مرکزونو خدمات د عامې روغتیا ریاست په همغږۍ د BMGF په مالي لګښت د Haddaf موسسې له لوري تطبیقېږي.ځایي اوسېدونکي د دې روغتیایي مرکزونو په پرانیستلو خوښي څرګندوي او وایي، چې په دې سره به یې روغتیایي ستونزې تر ډېره حل شي.

### لوګر کې...

یوه کال کې د شاوخوا ٤۵۰زره امریکایي ډالرو په مالي لګښت بیاورغول شي. نوموړي وویل: (( د ترمیم په دغو چارو کې د ښوونځیو د ودانیو، دروازو، کړکیو، دېوالونو او نورو اړینو ملحقاتو رنګول او د اساسي ترمیم کارونه شامل دي، چې په بیا رغېدو سره به یې شاوخوا ٤۰زره زدهکوونکو ته د زده کړو مناسب چاپېریال برابر شي.))

عرب وویل: د پوهنې ریاست هڅه کوي ،چې د لوګر په مرکز پلعلم او ولسوالیو کې هغو ښوونځیو ته هم ودانۍ جوړې کړي چې زدهکوونکي یې په کرایي کورونو او یا هم په ازاده فضا کې په لیکلوست بوخت دي. هېره دې نه وي چې لوګر کې د پوهنې ریاست اړوند ۲۸۷ دولتي ښوونځي شتون لري چې له ډلې یې ۹۰ ښوونځي ودانۍ نه لري او زدهکوونکي یې له پراخو ستونزو سره-سره په کرایي کورونو او ازاده فضا کې په لیکلوست بوخت دي.

### د کتاب ارزونې...

د ناستې په بهیر کې د کمېسیون غړیو د ورسپارل شویو کتابونو په اړه خپل راپورونه وړاندې کړل چې په اړه یې لازمې پرېکړې وشوې. د ناستې په پای کې، د کمېسیون پر غړیو هغه کتابونه ووېشل شول چې د ارزونې په موخه راجع شوي وو؛ څو راتلونکې ناستې ته یې راپور وړاندې کړي.

### له ۱۵۰۰۰ د زیاتو...

د قاچاق او غیرقانوني ښکار مخه ونیسو، حکومت باید یوه روښانه او د ټولو لپاره د پوهېدلو وړ ستراتېژي ترتیب کړي او په وضاحت سره ټینګار وشي، چې هېڅ ډول مرغه باید ښکار نشي او ورته مهال، د عامه پوهاوي کچه لوړه شي.))د چاپېریال ساتنې ملي اداري چارواکي په ټول هېواد کې د مرغانو د قاچاق او ښکار د مخنیوي لپاره د کمپاینونو د دېرېدو ډاډ ورکوي.

### له لوګر څخه...

ځمکو په اجاره ورکول د صادراتو د زیاتوالي لامل کېږي. د لوګر د سوداګرۍ او پانګونې خونې رئیس ولي محمد یعقوب مومند په دې اړه وایي: موږ یو میلیون ټنه صادرات کړي دي ،چې په کې ۷۰۰ زره ټنه سبزیجات دي او پاتې درې سوه زره یې بېلابېلې مېوې دي. لکه انګور، شفتالو ، زردالو او مڼې او داسې نورې مېوې. بل پلو ځینې سوداګر وایي، چې ډېره برخه صادرات یې پاکستان ته دي، خو په هېواد کې د مېوو د حاصل راټولولو پرمهال د لارو د تړل کېدو له امله له سختو ستونزو او مالي زیانونو سره مخ کېږي. دوی له حکومته د بدیلو لارو او بازارموندنې په برخه کې د همکارۍ غوښتنې لري. لوګر کې یو سوداګر، قطب الدین په دې اړه وایي: پاکستان ته چې زموږ مالونه څه وخت ځي او هغه مهال لاره بنده شي ، نو زموږ سوداګر ټول له زیانونو سره مخ شي. موږ له حکومته غواړو، چې بدیلې لارې موږ ته پیدا کړي. لکه تاجیکستان، ازبیکستان او نور هېوادونه. د عزت الله په نامه یو بل سوداګر هم وایي: دغو دوو ننګونو موږ ته ډېرې ستونزې پیدا کړې دي، چې یوه د لارې بندېدل دي او بله د سړو خونو نشتوالی دی. په ټول لوګر کې یوه سړه خونه هم نشته. موږ غواړو ،چې سړې خونې موږ ته جوړې شي او د نظام له لوري موږ ته پوره پاملرنه وشي. دا په داسې حال کې ده چې د اسلامي امارت له بیا واکمنېدو وروسته له منځنۍ اسیا، چین او ځینو نورو هېوادونو سره د افغانستان سوداګري زیاته شوې ده.

### د میدان وردګو...

او ورسره راغلو قومي مخورو ته ډاډ ورکړ، چې د برښنا شبکې د پراختیا چارې به مالي امکاناتو ته په کتو وارزول شي. د میدان وردګو والي او د یو شمېر سیمو قومي مخورو د افغانستان برښنا شرکت عمومي اجرائیوي رئیس ته ډاډ ورکړ، چې له برښنا څخه د پاتې سیمو اوسېدونکي د شبکې د پراختیا لپاره د یو شمېر اړتیا وړ تجهیزاتو چمتو کولو برخه کې همکارۍ ته چمتو دي. ډاکټر عبدالباري عمر د افغانستان برښنا شرکت سره د شبکو د پراختیا برخو کې د خلکو همکارۍ ستایلې او دا یې پر نظام د افغانانو د باور او ملاتړ مهمې بېلګې بللې دي.

### د پوهنې وزارت...

د افغانستان د اسلامي امارت هڅه هم دا ده چې د عصري علومو پر مټ او کار اهلو کسانو ته په سپارلو سره هېواد د پرمختګ لور ته بوزي. د سیمې په کچه افغانستان له چا کم نه دی، د پیاوړي سیستم په لرلو سره د ولسونو خدمتونه کوي، چې ټول ولسونه پرې قانع دي، واسطه ځای نه لري او کار اهل کسانو ته سپارل شوی دی، نو بریالي ګډونوال دې نظام او خلکو ته صادقانه خدمت وکړي.

د نوموړي په خبره: په یاده پروسه کې د هېواد له بېلا بېلو سیمو څخه مینه والو په کې ګډون کړی و، چې د ۱۱٤٦۳ کسانو له جملې ۸۱٦۵ کسان د ازادو سیالیو له لارې بریالي شول. د لوړو زدکړو وزارت اداري او مالي معین حافظ محمد حامد حسیب وویل: کار اهلو کسانو ته سپارل د اسلامي نظام اصل دی چې ورته باید ټول مسئولین متوجه اوسي او دا چاره د افغانستان اسلامي امارت عملي کړې ده، چې نن یې پایلې ښکاره دي، نو د پوهنې وزارت د هېواد ټولو بچیانو ته د تعلیم زمینه برابروي تر څو په ښه طریقه و روزل شي، نو ښوونکي دې د دې هېواد بچیان په سمه توګه وروزي، تر څو د تعلیم په برخه کې پر ځان بسیا شو. د پوهنې وزارت په استازیتوب د کیفیت د تضمین معین مولوي عبدالخالق صادق وویل: کوم ښوونه چې د ملي اداري په واک کې ورکول شوي وو، په ربه توګه یې ازموینه تر سره شوه چې معیار یې وړتیا او له کومې واسطې پرته کسان د خپلو وړتیاوو پر بنسټ ټاکل شوي دي، په دې کې ګډونوالو له کوم تبعیض پرته ګډون کړی و، چې د خپلو زحمتونو او لیاقت له مخې بریالي شوي دي چې دا د روڼتیا بیلګه ده، نو ګډونوال دې باوري اوسي چې دوی د خپلو وړتیاوو پر اساس بریالي شوي دي او د بریالیو کسانو د استخدام پروسه به پیل شي او د نوي تعلیمي کال په پیل سره به دوام ومومي. د نوموړي په وینا: د زده کوونکو د مضامینو پر اساس چې کومې ستونزې لري، حل به شي او د رشتو په اساس به ورته ښوونکي وټاکل شي، د ښوونکو کموالی به ختم او کیفیت به یې زیات شي، نو له ټولو مسئولینو غواړم چې د پوهنې وزارت ته زیاته پاملرنه وکړي. زیارمل هوتک

### پر غزې د ...

د خبر له مخې، د اشغالګرو اسرائیلو د انرژۍ وزیر غزې ته د برښنا د لېږد د ژر تر ژره پرې کولو امر کړی. اسرائیلي اشغالګرو غزې ته د خوراکي توکو، درملو، پاکو اوبو او مرستو له بندولو وروسته د برښنا پرې کولو پرېکړې سره غواړي پر حماس فشار راوړي. د ملګرو ملتونو ځانګړي راپور ورکوونکي فرانسیسا البانیس هم د اسرائیلو دغه پرېکړه غندلې. په خبره یې، هغه هېوادونه چې لا هم اسرائیلو سره مرسته کوي، له دې رژیم سره په نسل وژنه کې شریک دي. د یادونې وړ ده چې اسرائیلو له یوې اوونۍ راهیسې غزې ته د ټولو بشري مرستو د لېږد مخه نیولې ده.

### غزه د فلسطین...

د منځني ختیځ د خلکو لپاره د عدالت، سولې او پرمختګ لپاره خپلې قاطع هڅې ته دوام ورکړي. د چین د بهرنیو چارو وزیر دغه څرګندونې د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ د هغه پلان په غبرګون کې کړې دي، چې له مخې یې امریکا غواړي غزه ونیسي او دا سیمه بیا ورغوي. ټرمپ همدا راز غوښتنه کړې چې د غزې اوسېدونکي فلسطینیان نورو سیمو لکه مصر او اردن ته ولېږدول شي. د ټرمپ د غزې د نیولو پلان له پراخو نړیوالو نیوکو سره مخ شوی دی.

### پنجشیر کې...

ګیلاسو، ۵٦٦ زره ٤۹۸ قیراطه زمردو، ۲۱ زره ۳۸۰ لېټره لبنیاتو او ۲۸ زره ۹۵۵ کیلوګرامه طبي توکو له پلور څخه ترلاسه شوي دي. د یادونې وړ ده، چې هېواد ته د اسلامي امارت په بریا سره د یاد ولایت د صادراتو کچه زیاته شوې او په دغه ولایت کې د پانګونې او اقتصادي پراختیا لپاره زیات فرصتونه رامنځته شوي دي.

### پکتیا کې ځوانان...

سره له منځه ولاړې شي. د پکتیا د ډنډ پټان ولسوالۍ یو بل اوسېدونکي، نقیم خان هم په دې اړه وایي: دا ډېر ښه پرمختګ دی، چې دا کتابتون جوړ شو. خلک له اقتصادي پلوه ډېر غریبان وو او نه یې شوای کولای چې کتاب واخلي. د ډنډ پټان ولسوالۍ ځینې ځوانان بیا وایي: په ډېرو لرې سیمو کې کتاب ته لاسرسی نشته او د اطلاعاتو او فرهنګ له ریاسته غواړي چې په هغو سیمو کې دې هم ورته عامه کتابتونونه جوړ کړي. د پکتیا د ډنډپټان ولسوالۍ اوسېدونکی، عبدالمالک حیران بیا وایي: له اطلاعاتو او فرهنګ ریاسته مو غوښتنه دا ده ،چې په لرې پرتو سیمو کې کتابتون جوړ کړي، یوازې دا نه چې زموږ په سیمه کې ، بلکې په هره سیمه کې دې دا ډول کتابتونونه پرانیستل شي. د پکتیا د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس بیا د دې کتابتون جوړول ښه هڅه بولي او د غني کولو برخه کې یې د همکارۍ ډاډ ورکوي. د پکتیا د اطلاعاتو او فرهنګ رئیس، ثواب جان اسلام یار وایي: په لرې پرتو سیمو کې او په هغو ولسوالیو کې چې کتابتونونه نه لري، نو موږ هڅه کوو، چې هغو ولسوالیو ته کتابتونونه وغځوو. که په دې برخه کې څوک په شخصي توګه ونډه اخلي له هغوی سره به هم همکاري وکړو. د پکتیا د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د مسئولینو د معلوماتو پربنسټ دا مهال په دغه ولایت کې څلور عامه کتابتونونه په مرکز ګردیز، زرمت، سیدکرم او څمکنیو ولسوالیو کې د مطالعې د مینه والو پرمخ پرانیستي دي.

### لوګر کې د نیالګیو...

بله خوا د دغه ولایت د کرنې اوبولګولو او مالدارۍ رئیس مولوي حبیبالرحمن پیراقا وویل: د کرنې او مالدارۍ او چاپېریال ساتنې ریاستونو او د پلعلم ښاروالۍ په ګډه همکارۍ (( د نن ورځې نیالګي؛ د راتلونکي هوساینه )) په نامه د۱٤۰٤ لمریز کال د نیالګیو کېنولو پسرلنی کمپاین رسماً پیل شو. نوموړي زیاته کړه چې د یاد کمپاین په ترڅ کې به د مرکز پل علم په ګډون په ټولو ولسوالیو کې شاوخوا ۲۵۰ زره میوه لرونکي او غیر میوه لرونکي نیالګي کېنول شي. د پل علم یو اوسېدونکي محمد ادریس وایي: هر کال په دغه ولایت کې سلګونه زره نیالګي کېنول کیږي، خو د اړوندو ادارو د نه پاملرنې له امله له منځه ځي. نوموړي د لوګر پر ولایتي اداري غږ وکړ چې د نیالګیو پر کېنولو سربېره یې ساتنې او پالنې ته هم جدي پام وکړي.

### بغلان کې...

کیمیاوي سره او کرنیز تخمونه وېشل شوي، څو هغوی ترې په خپلو کروندو کې ګټه پورته کړي.احدي وایي، چې دغه کرنیز تخمونه د غنمو، شولو، میو او ګنو نورو کرنیزو توکو وو، چې له اړتیا سره سم د دې ولایت پر بزګرو یې وېشلي دي. په همدې مهال سیدرفیق او علم ګل د بغلان ولایت دوه بزګران وایي، چې له کروندګرو د ملاتړ لپاره دغه ډول پروګرامونه چې له مخې یې دوي ته کیمیاوي سره او کرنیز تخمونه وېشل کېږي خورا مهم دي او غوښتنه کوي چې د کرنې ریاست باید د کرنیزو توکو د ملاتړ او د کروندګرو د هڅونې لپاره غیردولتي سازمانونه هم وهڅوي څو له کروندګرو سره مرسته وکړي.

### د جرمني...

اسنادو کډوال چې پکې پناه غوښتونکي هم شامل دي، له خپلو سرحدونو بېرته ستنوي. هغه زیاته کړې چې د داوطلبانه منل کېدو پروګرامونه د بېلګې په توګه له افغانستان څخه پای ته رسوي او هېڅ نوی پروګرام به پیل نه کړي.

### هر څوک چې...

په قطع کولو سره سوریه کې تاوتریخوالی زیات کړی دی. په ورته مهال د سورېې د بهرنیو چارو وزیر ویلي: چاته به اجازه ورنه کړي، چې سوریه له یوې بلې جګړې او بحران سره مخ کړي.

Hewad Daily

سه شنبه د رمضان المبارک ۱۱مه ۱۴۴٦ق کال د ۱٤۰۳ ل کال د کب ۲۱مه د 2025 م کال د مارچ 11مه

د ورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر« بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲٦۳٤۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷٤۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ کابل - افغانستان
داریکو شمېره: ۰۲۰ - ۲۵۲٦۳٤۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې وېب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷٦٦۰۴۴۹٦٦-۰۷۳٦۰٦۰۷۳

# د پوهنې وزارت د ۸۱۶۵ تشو بستونو د اخیستل شویو ازموینو پایلې اعلان کړې




د پوهنې وزارت د پنځمو، شپږمو، اداري او د ښوونکو اړوندو ۸۱۶۵ خالي بستونو کې د استخدام په موخه چې د آزادې سیالۍ له لارې د ازموینو له ملي اداري سره په ګډه اخیستل شوې وې، پایلې یې اعلان کړې. په دې اړه د حکومت د اطلاعاتو او رسنیو په مرکز کې راټولې شوې غونډې ته په وینا کې د ازموینې د ملي اداري رئیس شیخ عبدالباقي حقاني وویل: په ازموینو کې زموږ معیار او موخه ورتیاوې دي. هغه کسان په کې بریالي کېږي چې له پوهې او علم څخه برخمن وي. اوس د هېواد آبادۍ ته کار کول په کار دي او...**۳مخ**

## پر غزې د برښنا بندولو پرېکړه ستر جنګي جرم دی

د حماس جهادي غورځنګ د اسرائیلو له لوري پر غزې د برښنا په خپرولو سره ویلي: غزې ته د خوراکي توکو، درملو او اوبو



پرې کولو پرېکړه غندلې او هغه یې ټولنیزه سزا او جنګي جرم ګڼلې دی. حماس د یوې خبرپاڼې له بندولو وروسته د برښنا پرې کولو پرېکړه په کلکه غندي. د الجزیرې...**۳مخ**

## د چین د بهرنیو چارو وزیر:
## غزه د فلسطین د خاورې نه بېلېدونکې برخه ده

د چین د بهرنیو چارو وزیر وانګ یي ویلي، چې غزه د فلسطین په خلکو پورې اړه لري او (( د فلسطین د خاورې یوه نه بېلېدونکې برخه ده )) نوموړي ویلي: د دې ساحلي سیمې په وضعیت کې هر جبري بدلون به یوازې د لا زیاتې بې ثباتۍ لامل شي. ده ټینګار کړی، چې لومړیتوب باید د اسرائیلو او فلسطین د دوو خپلواکو دولتونو جوړېدل وي، څکه همدا له ټولو ښه حللاره ده. وانګ یي ویلي چې بیجینګ به...**۳مخ**

## پنجشیرکې د محصولاتو له صادراتو څه باندې ۳۶۰ میلیونه افغانۍ عواید ترلاسه شوي



د پنجشیر د صنعت او سوداګرۍ ریاست مسئولینو په روان لمریز کال کې له سیمه ییزو محصولاتو څخه د څه باندې ۳۶۰ میلیونه افغانۍ عوایدو د راټولولو خبر ورکړی دی. د یاد ریاست رئیس مولوي امین الحق ماثوري باختراطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې په روان ۱۴۰۳ لمریز کال کې په دغه ولایت کې د سیمه ییزو محصولاتو د صادراتو له درکه ۳۶۰ میلیونه ۲۱ زره ۲۴۲ افغانۍ عواید راټول او د دولت خزانې ته سپارل شوي دي. د نوموړي په وینا دغه عواید د ۸۸۰۰ ټنه...**۳مخ**

## پکتیا کې ځوانان د مطالعې دودولو په لټه کې دي

د پکتیا ولایت د ډنډ پټان ولسوالۍ په یوه کلیواله سیمه کې ځینو ځوانانو په شخصي هڅو عامه کتابتون جوړ کړي دي. دغه عامه کتابتون د پکتیا د ډنډ پټان ولسوالۍ په لرې پرته سیمه کې څو ځوانانو په شخصي هڅو جوړ کړی چې شاوخوا شپږ سوه کتابونه لري. په ورځني ډول لسګونه ځوانان دلته د خپلې خوښې کتاب لوستنې او یا هم له ځان سره د کتاب وړلو په موخه راځي. د پکتیا د ډنډپټان ولسوالۍ اوسېدونکی، سید ولي همکار وایي: دا د دې لپاره، چې ځوانان په علمي ډګر کې ځان ورسوي. دا چې ډنډ پټان یوه لرې پرته ولسوالي ده او موږ غواړو، چې د دغه ځای ځوانان ځان ورسوي، ترڅو ځوانان له سیالانو سره سیال شي او کومې ناخوالې، چې په دې ټولنه کې دي هغه په علم او تعلیم...**۳مخ**

## د پاشدان بند رغنیزې چارې ۹۵سلنه بشپړې شوي



د اوبو او انرژۍ وزارت وایي چې د درېیو لویو بندونو د جوړولو چارې بشپړې شوي دي. د اوبو او انرژۍ وزارت وایي: دغه وزارت د هېواد د اوبو د ښه مدیریت او د انرژۍ د تولید په موخه سږکال د کمال خان، شاه و عروس، عمري، کجکي، بخش اباد، آغا جان، پلتوني او پاشدان د اوبو بندونو د پاتې چارو کارونه پیل کړي او له دې منځه بیا د کمال خان، شاه و عروس او عمري بندونو چارې بشپړې شوې دي. د دغه وزارت ویاند وایي: د هرات د پاشدان د اوبو بند چارې بیا ۹۵ سلنه پرمخ تللي او د پکتیکا د پلتوني بند ۲۰ سلنه چارې بشپړې شوې دي. د اوبو او انرژۍ وزارت ویاند مطیع الله عابد په دې اړه وایي: «هغه لویې پروژې چې سږ کال د اوبو او انرژۍ وزارت له لوري پلې شوې، له ډلې یې د شاه و عروس بند، عمري بند او کمال‌خان بند پروژې بشپړې شوي او ګټې اخیستنې ته سپارل شوي دي.))د چارو ځینې شنونکي په هېواد کې د اوبو د مدیریت لپاره د بندونو جوړېدو اهمیت ته په نغوتې سره پر معیاري بڼه د یادو بندونو پر جوړېدنې او همدا راز په دې برخه کې پر لا زیاتو پانګونو ټینګار لري د اقتصادي چارو یو بل شنونکی عبدالنصیر رښتیا هم وایي: ((حکومت باید د بهرنیو پانګوالو لپاره د انرژۍ په برخه کې لا زیاته زمینه برابره کړي، څکه چې انرژي د تولید او د هېواد د اقتصاد د ودې له بنسټیزو عناصرو څخه ده. د رئیس الوزراء اقتصادي مرستیال له دې مخکې په کابل کې د اوبو په نړیوال کنفرانس کې په نړۍ کې د اوبو کچې کمښت ته په اشارې سره وویل: ټول هېوادوال باید له هرې شونې لارې هڅې وکړي، ترڅو د افغانستان اوبه په ښه توګه مدیریت شي.

## لوګر کې د نیالګیو کېنولو پسرلنی کمپاین پیل شو

د لوګر مرکز پل‌علم ښار کې د ۱۴۰۴ هجري لمریز کال د نیالګیو کېنولو کمپاین پیل شوی ،چې له مخې به یې ۲۵۰زره مېوه‌لرونکي او غیر مېوه‌لرونکي نیالګي کېنول شي. پل‌علم کې د نیالګیو کېنولو د کمپاین غونډې ته د دغه ولایت مرستیال مولوي محمدانور دین‌پرور وویل: د هوا ککړتیا ته په کتو ټولو هېوادوالو ته پکار ده، چې په نوي کال کې په خپلو سیمو کې مېوه‌لرونکي او غیر مېوه‌لرونکي نیالګي کېنوي. دین‌پرور زیاته کړه: د نیالګیو کېنولو په اړه ولس ښه پوهاوي لري او باید په دغه کمپاین کې د لوګر د کرنې او مالدارۍ ریاست سره همکاري وکړي. ..**۳مخ**

## بغلان کې ۳۰ زرو بزګرانو ته کیمیاوي سره او کرنیز تخمونه وېشل شوي

د بغلان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ ریاست مسئولین وایي چې په روان ۱۴۰۳ کال کې یې له کروندګرو څخه د ملاتړ او د کرنیز تخمونه وېشلي دي. د بغلان د کرنې، اوبولګولو او مالدارۍ رئیس مولوي رحیم الله احدي وایي، چې له کروندګرو د ملاتړ



هڅوي د هڅونې په موخه دېرش زره بزګرو ته کیمیاوي سره او په موخه روان کال کې د بغلان ولایت ۳۰ زره بزګرو ته ...**۳مخ**

## احمد الشرع: هر څوک چې د ملکیانو په وژنه کې لاس ولري سزا به ورکړل شي

د سوریې د نوي دولت مشر احمد الشرع ویلي: هر څوک چې له خپل واک څخه په ناوړې ګټې اخیستنې د ملکیانو په وژنه کې رول ولري، سزا به ورکړل شي. رویټرز خبري اژانس خبر ورکړی، چې د سوریې د حکومت او د بشار الاسد د طرفدارو پاڅون کوونکو ترمنځ لا هم جګړه دوام لري. تر اوسه له زرو تنو زیات کسان په کې وژل شوي دي. دغه نښتې د سوریې سواحلو او لاذیقه، جبله او بانیاس سیمو کې دوام لري، چې ډېر وژل شوي یې د بشار الاسد د رژیم پلویان علویان دي. رویټرز همدا راز ویلي: پاڅون کوونکو پر عامه تاسیساتو په بریدونو او د برښنا او اوبو...**۳مخ**



## د جرمني راتلونکی لومړی وزیر د پناه‌غوښتونکو د منلو پروګرامونه بندوي

د راپورونو له مخې د جرمني راتلونکی احتمالي لومړی وزیر فریدریش مرتڅ ویلي، چې د نوي حکومت له جوړېدو وروسته به د افغانستان په ګډون د پناه‌غوښتونکو د منلو پروګرام بند کړي. دویچه ویله تېره ورځ په یوه خپاره کړي راپور کې ویلي، چې مرتڅ د راتلونکي حکومت له شریکانو سره په خبرو کې د ناقانونه کډوالۍ په جدي توګه د کمولو هوکړه کړې ده. نوموړي ویلي چې د اروپا له ټولو لوی اقتصاد بې له قانوني...**۳مخ**

## هند د کرېکټ د اتلانو جام سیالیو اتلولي وګټله



د اتلانو جام سیالیو (چمپینزټرافي) پایلوبه د هند او نیوزیلنډ د کرېکټ ملي لوبډلو ترمنځ ترسره شوه. نیوزیلنډ د پچې په ګټلو سره لومړی د توپوهنې پرېکړه وکړه. په ټاکلو ۵۰ اورونو کې یې د ۷ لوبغاړو په سوځېدو سره سیالي لوبډلې ته د ۲۵۲ منډو هدف وټاکه. په ځواب کې یې د هند لوبډلې د ۶ لوبغاړو په سوځېدو سره ټاکلی هدف ترلاسه کړ او نیوزیلنډ ته یې د ۴ وېکټو په توپیر ماتې ورکړه او دغه ستره اتلولي یې خپله کړه. د اتلانو جام سیالۍ چې د پاکستان په کوربتوب پیل شوې وې، د افغانستان په ګډون په کې ۸ لوبډلو برخه اخیستې وه، افغان لوبډلې په ګروپي سیالیو کې د پاکستان او انګلستان په پرتله ښې سیالۍ ترسره او درېیم نمرې یې ترلاسه کړې.